## استوګنه د صافي قوم:

هسي خو د صافي افراد د نړۍ په هره حصه کښې موندلے کيږي مګر په کثرت سره دوي د افغانستان په شمالي برخو او د خيبر پښتونخوا د قبليز اړخ په لاندنيو برخو کښې مېشته دي-

په افغانستان کښې د کونړ په اسد اباد ، لغمان، کاپيسا ، تګاب، نجراب ، پروان ، کوه صافي ، ننګرهار ، بوډيالي، دولت اباد ، فرهاب، قيمار، بادغيس، پکتيا، خوست ، بغلان ، باګرام ، تګاو، چغه سرائے، دريائے امو دواړه اړخ ته او په درو کښې نور ، نورګل ، مزار ، ديوګل ، شوګړي، باډيل چپه انګور او پيچ درو کښې مېشته دي-

په پاکستان کښې په مهمند ايجنسۍ ، تحصيل صافي ، سور کمر، لکړي ، چيناري ، زيارت ، بن دره (برول) اپر دير، ملاکنډ ايجسنۍ ، مردان ، تخت بهايۍ تحصيل، هري چند چارسده تحصيل، جنوبي پښتونخوا سيوۍ، ژوب ، کوئټه ، فيصل اباد (پنجاب) ، لکهنو بهارت کښې مېشته دي-

## کوچه صافیان:

دا کوڅه (صافیان) محله یوسفزي مندن شاهجانپور ښار صوبه اُتر پردېش (بهارت) کښې واقع ده چې په کښې صافي قبیله اوسیږي . هغوي شیعه مسلك اختیار کړے دے. شیعه صافي شاهجان پور پټهانانو دولس قبیلو دولس ښارونه اباد کړي دي چې هغې ته باره بستي وئیلے شي. مثلاً احمداباد، شاهجان پور وغېره

صافي اباد تحصیل تخت بهایې ضلع مردان:

هسې خو د صافیانو ټول خېلونه لکه مسعود، قندهاري، ګربز، مدوړ د سخاکوټ نه راواخله تر مردان جرنیلي سړك په دواړه اړخه په کلو کښې اباد دي خو د صافیانو په نوم کلے د جلاله نه شپږ کلومیټره نمرخاتهٔ اړخ ته پروت دے . د صافي اباد اولنۍ تیګه په کال

۱۸۹۰ء کښې اېښودلې شوې وه - هغه وخت د ملاکنډ
سُرنګ نهٔ وهٔ کنستلے شوے او سوات د سيند نه د اوبو
نهرونه نهٔ وو جوړ شوي او د بائزو زمکې للمې ، شاړې او
غېر ابادې وې، صافي قام دا شاړې زمکې په بيع
واخستلې او په خپلو زمکو باندې په وړو وړو کلو کښې
مېشته شو -هر چا ځان له حجره جومات او کورونه جوړ
کړل چې په هغې کښې صافي اباد نوم کلے هم دے-